# سوسیالیزم (ټولنیز عدالت) د ماشومانو لپاره

**ګلونو ماشومانو او ځوانانو**

کلونه کېږي چې ځینې نه غواړي تاسو لوست وکړئ او د ورځې له عصري علومو سره بلد شئ.

کله چې وایم ځینې موخه مې یواځې له رهبرانو څخه نه ده.

رهبران خو یواځې د ټوپک په زور د لوست مخه نیسي.

خو داسې ډېر نور رهبران شته چې هوښیار دي او په ښکاره د چا مخه نه نیسي خو هغوي ماشومان او ځوانان، په زړه‌راښکونکو او بې‌ارزښته کارونو کې بوختوي چې هغوی هیڅ فکر ونه کړي.

د بېلګې په توګه داسې کمپیوټري او د مبایل ګیمونه جوړوي چې یو وار پرې روږدی شوې نو شپه او ورځ به پکې بوخت یې.

یا داسې د جادوګرۍ او خوب‌تعبیر کتابونه چاپوي چې یواځې ستاسو وخت پرې ضایع کېږي او بس.

زه خپله هم چې کوچنی وم علاقه مې لرله همدا کارونه وکړم او خپل وخت ضایع کړم خو یو وخت په هوښ راغلم او ومې ویل:

«مګر زه څومره وخت لرم چې داسې یې بېهوده ضایع کړم؟»

همدا و چې دا بې‌ارزښته کارونه مې پرېښودل. او کلونه کېږي چې کمپیوټري لوبې مې

نه دي کړي. خپلو ماشومانو ته مې هم هیڅکله د ګیم سی‌ډي نده اخیستې.

خو په بدل کې کتاب لولم او هغه هم هر کتاب نه، یوازې هغه کتابونه لولم چې پوهه مې ډیر کړي او وپوهیږم چې نړۍ د چا په لاس کې ده.

---

هغه مهال چې ماشوم وم زمونږ په هېواد کې انقلاب وشو.

ډیره ګڼه ګوڼه وه او مونږ ماشومان هم خوشاله وو ځکه ټولو یوه تلوسه لرله.

یو مذهبی و، یو کمونیست و او یو هم د امریکا پلوی و.

ټولو یو بل سره خبری اترې کولې او هڅه یې کوله کتابونه ولولي چې په بحث کې بل ته کم رانشي.

ډیر کتابونه چاپیدل او د هرې کوڅې په سر کې به یوه غرفه وه، خلک به راتول ول او بحثونه به یې کول.

هماغه وخت مې د لومړي ځل لپاره د سوسیالیزم نوم واوریده.

نه پوهیږم مریم چې د حمام د کارګر لور وه دا لغت یې وویلو او که افشین د ښوونکي ځوی چې کور یې زمونږ څخه لرې لرې و.

مریم او افشین او نورو ماشومانو چې عمرونه یې ډیر ول زمونږ په سیمه کې کتابونه پلورل او مونږ به یې راټولولو او دا غټ غټ لغتونه به یې راته ویل.

ومې ویل د لومړي ځل لپاره مې دا لغت په ماشومتوب کې اوریدلی و او پوښتنه مې وکړه چې سوسیالیزم څه شی دی؟

## وی ویل ټولنیز عدالت!

یانې ټول سره یوشان وي او داسې نه وي چې یو هر څه ولري او پاتې نور هیڅ هم ونه لري.

او داچې ټول خلک کورونه ولري او ټول ماشومان وکولای شي ښوونځي ته ولاړ شي.

دا خبرې مې چې اوریدلې د خپل تره څوی په فکر کې تلم. هغه د پلار یو څوی و او هر څه به یې چې غوښتل ورته اخیستل به یې خو مونږ پنځه ورونه او خویندې وو او تل مو د ډوډۍ او لوبو سامان پر سره جګړه کوله.

د شپې به چې ټول په یوه کوټه کې ویده کېدو نو په توشکه او د خوب پر ځای مو لانجه کوله.

فکر مې کاوه څه به شوی وای که مونږ هم د تره د څوی په څیر ځانته د خوب کوټه لرلی او یو وړوکی ۱۴ اینچه تلویزیون مو لرلی چې پکې کارتون مو لیدلی وای؟

خو دا ټول خوب او خیال و او مونږ اړ و چې تور او سپین تلویزیون ووینو.

د اوس په څیر کارتون هم زیات نه و.

دا ټول ددې لامل شو چې کتاب ته مخه کړو او مطالعه وکړو.

کله چې رالوی شوم بیا هم د سوسیالیزم په چرت کې وم. همدا و چې په دې اړه مې ډیر کتابونه وپیرل او ولوستل.

اوس غواړم تاسو ته په ساده ژبه ووایم چې سوسیالیزم څه شی دی.

او غواړم دا هم ووایم چې تل کتاب ولولۍ تر څو خلک په آسانۍ سره تاسو ونه غولوي.

# سوسیالیزم یانې دا چې هیڅوک بېوزله نه وي

**دا ښایسته کور وګورئ:**



**ډېر ښکلی ده.**

**همداسې نده؟**

**ددې کور مالک یو شتمن سړی دی چې په کال کې دوه درې ځله خپل موټر بدلوي.**

**ددې کور ماشومان هم ډېر خوشاله دي او تل خاندي. ځکه هغوي په کور کې د لمبلو حوض لري او د والیبال لپاره میدان لري. او پلار یې ورسره ژمنه کړې که خپل درسونه سم ووایي نو یو ښکلی آس به هم ورته واخلي.**

**ماشومان یې هم ټول په ښه درجه کې دي.**

د کورنۍ مشر ځوی سږکال له دولسم څخه فارغېږي او پلاره یې کارونه ورته جوړوي چې لاړ شي هالنډ ته او هلته د درمل جوړولو په برخه درس ووايي.

ښه آرامه او سوکاله ژوند لري همداسې نه ده؟

اوس دا انځور وګورئ:



په دې حویلۍ کې پنځه کورنۍ ژوند کوي او هر یو یې څلور پنځه ماشومان لري.

تفریح یې هم داده چې له سهار څخه تر شپې پورې په کوڅو کې توکي وپلوري او یا خیرات راټول کړي.

مور او پلار یې دومره پیسې نه لري چې د کور لګښت پوره کړي له همدې امله ماشومان هم باید کار وکړي.

په هغه کورکې چې پر بام يې ټايرونه دي څلور کسه ژوند کوي. مشر ځوی يې اته کلن دی او ښوونځي ته نه ځي.

یوه ورځ يې له خپل پلار څخه وپوښتل چې ولې يې په ښوونځي که نوم نه ليکلي؟

پوهېږئ چې پلار يې ورته څه وويل؟

ستونی يې غريو ونيو او وی ويل: پيسې نه لرم چې تاته قلم او کتابچه او پنسل تراش واخلم.

پلار يې رنځور شو او تل تبه کوي

ددې لپاره چې رنځو و له کار يې وويستلو.

پوښتنه کوئ چې دا کار چا کړی؟

څه توپير کوي. يا به د هغو خوشاله او نيکمرغه ماشومانو شتمن پلار دا کار کړی وي او يا هم کوم بل شتمن کس.

په هر حال ژوند يې ډير خراب دی او ډاکټرانو ويلي که درملنه يې ونه شي شايد دوه درې کاله وروسته ومري.

---

ريښتيا ماشومانو

ولې بايد داسې وي؟

يو هغومره نيکمرغه او بل دومره بدمرغه؟

فکر کوئ لامل به يې څه وي؟

پرېږدئ چې زه يې درته ووايم:

لامل يې داده په هغه هېواد کې چې دوي ژوند کوي د ځنګل قانون واکمن دی.

د ځنګل قانون وايي: «پیاوړی حق لري چې پر کمزوري حکومت وکړي.»

خو د پام وړ خبره داده، په دې هېوادونو کې مشران هيڅکله نه وايي چې مونږ د ځنګل قانون لرو.

هغوی وايي مونږ آزاد اقتصاد لرو. مونږ پانګوالي لرو.

کله چې ورځخه پوښتنه کوې ولې باید داسې وي وايي: يو زيار ايستلی شتمن شوی او يو هم بدچانسه و رنځور شوی دی.

ګلونو ماشومانو آيا هغوی ريښتيا وايي؟

آيا د هغه کور ماشومانو چې حوض لري هم زيار ايستلی دی؟

آيا ددې کورنۍ مشر ځوی چې څلور پنځه کاله وروسته ډاکټر کېږي هم زيار ايستلی دی؟

يا هغه ماشوم چې ښوونځي ته نشي تللای، ملامت دی چې پلار يې رنځور دی؟

ښکاره ده چې ځواب راکوئ:

نه

له اقتصادي آزادۍ څخه خبرې کول يوازې يوه پلمه ده ترڅو خپل ځای په تولنه کې وساتي.

ښکاره خبره ده چې دوی هيڅ زيار ندہ ايستلی. يواځې د پيسو په راټولو او ډېرولو دې ځای ته رسيدلی دي.

سوسیالیزم څه وایي:

وایي ټول باید کور ولري او ټول باید ښوونځي ته ولاړ شي.

اوس شاید درته پوښتنه پیدا شي چې که ټول کور ولري او ټول ښوونځي ولاړ شي نو حوض او هالنډ ته تګ څنګه کېږي؟

که ټول سره یو برابر شي بیا هم د لمبا حوض او آس ځغاستې ته تللای شو؟

سوسیالیزم وایي:

هو

خو آس ځغاسته او حوض ته تګ باید د ټولو لپاره وي نه دا چې یو په کور کې حوض ولري او بل ونشي کولای کال کې یو ځل خپل مور او پلار سره شمالي ته د لمبا لپاره ولاړ شي.

کله چې په هر ښار کې په ډېره اندازه حوضونه او آس ځغاستې میدانونه وي نو ټول کولای شي ترینه ګټه پورته کړي.



یو بل مثال درته وایم:

دا موټر وینئ:

ښکلی دی کنه؟

پوهېږئ چې بیه یې څومره ده؟

که په افغانیو یې درته ووایم شاید پوه نشئ خو دومره درته وایم چې په دې پیسو کولای شئ بې‌وزلو لپاره لس کورونه جوړ کړئ.

سوسیالیزم وایي:

ښه داده چې ټول له عمومي وسایلو لکه بس او اورګادي او... څخه ګټه واخلي

او که موټر هم جوړېږي باید دومره ګران نه وي، داسې موټر باید جوړ شي چې ټول یې د اخیستلو توان ولري.

اوس شاید ځیني ووایي که ټول یو شان موټر ولري نو د موټرو په برخه کې هیڅ پنځونه نه رامنځته کېږي او نوی او ښکلي موټرونه به هیڅکله هم جوړ نشي.

هغوی هم ریښتیا وایي خو راځئ وګورو چې کوم حالت ښه ده؟

یو دې بنز موټر ولري او بل دې آن څپلۍ ونه لري؟



یا داچې ټول یو شان وي او له ارزانه موټرونو څخه ګټه واخلي؟

سوسیالیزم دویم ځواب ته‌اکي.

هوښیار خلک هم همداسې او که له سل کسو پوښتنه وکړې له نوي څخه ډیر یې وایې چې دویم ځواب سم ده.

له همدې امله ځینې په دې باور دي چې:

له سوسیالیزم سره د انسانانو مینه یوه فطري او ذاتي مینه ده.

خو دا چې نوی سلنه خلک غواړي په نړۍ کې دې برابري وي نو ولې سوسیالیزم نه کامیابیږي؟

ولې سوسیالیزم له منځه ولاړو؟

ستاسو پوښتنې ته باید یو څه وضاحت ورکړم:

کلونه کیږي چې پانګوال د سوسیالیزم پر ضد فعالیت کوي. په ډیرو هیوادونو کې سوسیالیستان نیسي او بندي کوي یې او یا یې وژني. [په افغانستان کې د نادر شاه د حکومت په لړ کې سوسیالیستان څه چې آن ملی شخصیتونه آزاد نه ول او ژوندي نه پرېښودل کېدل. د دهمزنګ او سرای موتی زندان له ملی او دموکراتیکو کسانو ډک وو او ډیری یې اعدام شول. د ظاهر په حکومت کې هم هاشم خان (د ظاهر شاه تره) ډیر شمیر وطن‌پرسته و ملی کسان په دار وځړول. د خلق او پرچم د واکمنۍ پر مهال چپ، ملی، دموکراتیک او آن ښوونکي د خرخي‌پل په پولیګونونو کې ژوندي ښخ شول او وروسته بیا جهادیانو ګلبدین، ربانی، سیاف، مسعود... ډیر شمیر مبارزان او سوسیالیستان دننه په هیواد کې او له هیواد څخه بهر په پاکستان او ایران کې ووژل.ــ ژباړونکی]

شتمن پوهیږي که سوسیالیستان بریالي شي نو ښایي دوي خپلې پیسې له لاسه

ورکړي، نو تر ورستۍ کچې هڅه کوي چې ددوی مخه ډب کړي.

ویل به یې چې دوی مسلمانان نه دي او دین نه لري.

(ریښتیا ده سوسیالیستان په دین باور نه لري خو په تاریخ کې ډیر داسې کسان تیر شوی چې هم مسلمانان ول او هم سوسیالیستان)

لنډه دا چې شتمنو ډیرې پیسې ولګولې خو بیا یې هم ونشوکولای چې سوسیالیستان له منځه یوسي.

که مو وویل چې ولې؟

ځکه د بشر فطرت او د انسان ذات هیڅکله له منځه نه ځي.

په درواغو سره وایې چې سوسیالیزم ماتې خوړلې ده.

خو تاسو پرې باور مه کوئ.

دا درواغ وایي تر څو خلک وغولوي او له یوې غوره نړۍ څخه ددوي هیلې وشکوي.

ځینې خلک پر سوسیالیزم نیوکې هم کوي او وایي چې سوسیالیزم د استعداد و خلاقیت او پنځونو مخه نیسي او ددې په راتګ سره به هېوادونه په ټپه ودرېږي حال داچې د استعداد او خلاقیت او پنځونو مخه پانګوالۍ نیولې. [په پانګوالۍ نظام کې ښوونځی، پوهنتون، پنځونې... د هغو خلکو په چوپړ کې دي چې پیسې لري. همدا اوس د سرطان، ایډز او نورو ویروسي ناروغیو درملنه نشته ځکه علم د پانګوالو په انحصار کې دی او هغوی د همدې ناروغیو له امله هر کال په میلیاردونو ډالره درمل پلوري او نه غواړي چې ټول خلک پوهه ترلاسه کړي او دا درمل په آسانۍ سره تولید کړي.ـ ژباړونکی]

زمونږ خبرې اوږدې شوې او تاسو به هم ستړي شوی یاستئ.

هیله‌من یم دا لیکنه وکولای شي تاسو له دې ستري بشري ایډې سره بلد شئ او په راتلونکي کې وکولای شئ د سوسیالیزم په واکمنیدو کې ونډه واخلئ.

هیله‌من یم یوه ورځ راشي چې بې‌وزلي او ناپوهي زمونږ له هېواد څخه ورکه شي او هیڅ ماشوم د خپل پلار د رنځورتیا له امله کار ونکړي او هیڅ څوک دې ته اړ نشي چې د پیسو د نشتوالي له امله وږی نس ویده شي.

## د هغې ورځې په هیله